

# ملي سرود

دا وطن افغانستـان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کور دی
د پښتـون او هـزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېـواد به تل ځلیږي
په سینـه کې د آسیـا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عـزت د هـر افغان دی
هر بچی یې قهرمـان دی
د بـلوڅـو د ازبکـو
د تـرکمنـو د تـاجکـو
پـامیریـان، نـورسـتانیـان
هـم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمـر پر شنه آسمان
لکـه زړه وي جـاویـدان
وایـو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** حسن خط

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د هنر برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** څلورم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af





## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.
له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.
پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.
همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.
په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.
د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي



# فهرست

د لوست شمېر سرلیک مخ

**لومړی څپرکی: د نستعلیق خط د مفرداتو د خطاطۍ بڼه**



**دویم څپرکی: د نستعلیق خط پر قاعده د څو توریزو کلمو د خطاطي بڼه**

**دریم څپرکی: پر نستعلیق خط د لنډو جملو خطاطي**



**دویمه برخه**



**یادونه:** د هغو استاذانو لپاره چې د حسن خط د مضمون د تدریس دنده په غاړه لري، خط د پیژندلو، اقسامو او د ښایسته لیکلو لپاره د وسایلو او لوازمو د پیژندلو په اړه څو ضروري ټکي د کتاب په پای کې ځای په ځای شوي دي. هیله ده ښاغلي ښوونکي د تدریس پر مهال تري لازمه گټه واخلي.



# لومړی څپرکی

## د نستعلیق خط د مفرداتو د خطاطۍ بنه

**لومړی لوست**

## د «آ» توری

**موخه:** د کرسي خط له پاسه د نستعلیق خط قاعدې ته په پاملرنې سره د «آ» له توري سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

ستاسو په نظر د کومو تورو پر سر د مد توری لیکل کیږي؟

آیا ویلای شئ چې د «الف» په توري کې د کړکي د قلم څو حرکتونه شتون لري؟





**فعالیت**

د مشق په کتابچو کې د «آ» توری څو وارې په کړکي قلم ولیکئ.



**کورنۍ دنده**

پخپلو کتابچو کې په کړکي قلم څو وارې د الف او مد توري خطاطي کړئ.



## دویم لوست

# د «ب» توری

**موخه:** په نستعلیق خط د کرسي خط پر مخ د «ب» توري له خطاطي کولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

ستاسو په نظر د «ب» توری د کړکي قلم په څو حرکتونو کې خطاطي کیږي؟

څه فکر کوئ چې د «ب» توری پر څو طریقو خطاطي کیږي؟





**فعالیت**

په خپلو کتابچو کې د کرسي خط پر مخ پورتنی تمرین څو وارې پر کړکي قلم خطاطي کړئ.




په خپلو کتابچو کې د کرسي خط له پاسه د «ب» توری پر پنسل تمرین کړئ.



# د «ج» توری

**موخه:** د کرسي خط له پاسه د حرکتونو په پام کې نیولو سره په نستعلیق خط د «ج» توري له خطاطي سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

کله مو د «ج» توری خطاطي کړی دی؟

ستاسو په نظر د «ج» توري په خطاطی کولو کې څو حرکتونه شتون لري؟






**فعالیت**

په خپلو ډلو کې د «ج» توري د لیکلو د حرکتونو په اړوند خبرې وکړئ، وروسته یې د کرسي خط له پاسه پر کړکي قلم تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

د «ج» توری په کړکي قلم سره په کتابچو کې څو وارې تمرین کړئ.

## ځلورم لوست

# د «د» توری

**موخه:** د کړکي د قلم په واسطه د کرسي خط پر مخ پر نستعلیق خط د «د» توري د خطاطي له بنې سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنه**

کله مو د «د» توری د هغه له حرکتونو سره پر نستعلیق خط خطاطي کړی دی؟





**فعالیت**

پورتنی مشق د ښوونکي په مرسته پر کړکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ.



**کورنی دنده**

د «د» توری په کړکي قلم سره څو واري په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

## پنځم لوست

# د «ر» توری

**موخه:** د کرسي خط پر مخ د نستعلیق خط له قاعدې سره سم د «ر» توري د خطاطی له بنې سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

کله مو د «ر» توری پر قلم او نستعلیق خط خطاطي کړی دی؟

ستاسو په نظر د «ر» توري په خطاطی کې څو حرکتونه شتون لري؟





**فعالیت**

د «ر» توري د لیکلو په وخت کې د کرکي قلم د حرکت په اړوند، بحث وکړئ، وروسته یې څو واري په کرکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ.



**کورنی دنده**

پورتنی مشق پ کرکي قلم تمرین کړئ، په بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

# شپږم لوست

## د «س او ص» توري

**موخه:** زده کوونکي به د «س او ص» تورو د لیکلو په وخت د قلم د حرکتونه په دندانه لرونکي او کش بڼه او همدا رنګه به د «ص» توري حرکتونه د کرسي له پاسه پر نستعلیق خط وپیژني.



**پوښتني**

آیا کله مو د «س، ښ او ص» توري پر دندانو سربیره په کومه بله طریقه خطاطي کړي دي؟

په لاندې مشق کې څه وینئ ووایئ چې په لیکلو کې یې څو حرکتونه شتون لري؟





**فعالیت**

د دندانه دار او کش دار «س، ښ او ص» تورو په اړه یو له بل سره مشوره وکړئ، وروسته یې په کړکي قلم مشق او تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ مشق په کړکي قلم د کرسي خط پر مخ مشق او تمرین کړئ.





## اووم لوست

# د «ط» توری

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط د «ط» توري د ليکلو له حرکتونو او خطاطۍ سره آشنا شي.



**پوښتنې**

څه فکر کوئ د «ط» توری په څو حرکتونو کې د کړکي قلم په واسطه خطاطي شوی دی؟

ستاسو په نظر د «ط» توری له کومې نقطې پيل او په څو حرکتونو کې خطاطي کيږي؟






**فعالیت**

د «ط» توري د حرکتونو په پام کې نيولو سره په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه مشق او تمرین کړئ.



**کورنی دنده**

د «ط» توری په نستعلیق خط په کړکي قلم په خپلو کتابچوکې تمرین کړئ.

اتم لوست

## د «ع» توری

**موخه:** د نستعلیق خط د قاعدې په پام کې نیولو سره د «ع» توري د خطاطۍ له بنې سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

په نستعلیق خط مو کله د «ع» توری په کړکي قلم خطاطي کړی دی؟
ستاسو په نظر د «ع» توري د لیکلو حرکتونه په کړکي قلم له کومې نقطې څخه پیل کیږي؟






**فعالیت**

د «ع» توری په کړکي قلم د نستعلیق خط د قاعدو په پام کې نیولو سره د کرسي خط له پاسه مشق کړئ.



**کورنی دنده**

په کړکي قلم پورتنی نمونه په خپلو کتابچو کې څو وارې مشق کړئ.

## نهم لوست

# د «ف» توری

**موخه:** په نستعلیق خط د کرسي خط پر مخ د «ف» توري له خطاطي سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

ستاسو په نظر د «ف» توري په خطاطی کې څو حرکتونه شتون لري؟

څه فکر کوئ د «ف» توری په څو طریقو خطاطي کیږي؟





**فعالیت**

د «ف» توري او د هغه دخطاطی د څرنگوالي په اړوند فکر وکړئ، وروسته هغه په نستعلیق خط د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم مشق کړئ.



**کورنی دنده**

د «ف» توری په کړکي قلم له پورتنی نمونې سره سم په نستعلیق خط مشق او تمرین کړئ.

## لسم لوست

# د «ق» توری

**موخه:** د کرسي خط پر مخ په نستعليق خط د «ق» توري له خطاطۍ او د کړکي قلم له حرکتونو سره د زده کوونکو بلدتيا.



**پوښتنه**

څه فکر کوئ د «ق» توري خطاطي له کومې نقطې پيل کيږي؟






**فعاليت**

د «ق» توري د خطاطي په اړوند په خپلو کې بحث وکړئ، وروسته پورتنی مشق په خپلو کې تمرين کړئ.



**کورنی دنده**

د «ق» توری په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.

**يوولسم لوست**

# د «ک او گ» توري

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم د «ک او گ» تورو له خطاطۍ سره بلد شي.



**پوښتني**

کله مو پر کړکي قلم په نستعليق خط د «ک» توری خطاطي کړی دی؟

ستا سو په نظر د «ک» توري په خطاطي کې له کومو وسايلو څخه استفاده کيږي؟






**فعاليت**

د «ک او گ» تورو او د هغو د ليکلو پر بڼې يو له بل سره بحث وکړئ، وروسته يې په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه پر نستعليق خط مشق کړئ.



**کورنی دنده**

په خپلو کتابچو کې د «ک،گ» توري په کړکي قلم مشق کړئ.

**دولسم لوست**

## د «ل» توری

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم د «ل» توري له خطاطی سره بلدتیا پیدا کړي.



**پوښتنې**

ستاسو په نظر د «ل» توری په څو حرکتونو کې خطاطي کیږي؟
کله مو د «ل» توری په کړکي قلم او نستعلیق خط د کرسي خط له پاسه خطاطي کړی دی؟






**فعالیت**

د «ل» توري د حرکتونو د لیکلو پر بنې یو له بل سره مشوره وکړئ، بیایې په کړکي قلم پر نستعلیق خط د کرسي خط له پاسه مشق کړئ.



**کورنی دنده**

د «ل» توری په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه تمرین کړئ.

## دیارلسم لوست

# د «م» توری

**موخه:** زده کوونکي به په کړکي قلم د «م» توری خطاطي او حرکتونه د نستعلیق خط پر قاعدې د کرسي خط له پاسه زده کړي.



**پوښتنې**

لاندې شکل ته په ژورې پاملرنې سره وګورئ او ووایئ چې د «م» توری د کرسي خط په کومه برخه کې دی؟

ستاسو په نظر د «م» توری په څو حرکتونو کې خطاطي شوی دی؟






**فعالیت**

د «م» توري د حرکتونو او د هغه د خطاطي په اړوند یو له بل سره مشوره وکړئ، وروسته بیا پورتنی شکل په کړکي قلم تمرین کړئ.



**کورنی دنده**

پورتني شکلونه د کړکي قلم په واسطه د کرسي خط پر مخ په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## څوارلسم لوست

# د «ن» توری

**موخه:** زده کوونکي به د «ن» توري له خطاطۍ او د ليکلو له حرکتونو سره د کرسي خط له پاسه د نستعليق خط له قاعدې سره سم، بلدتيا پيدا کړي.



**پوښتنې**

څه فکر کوئ د «ن» توری د کرسي خط په کومه برخه کې پروت دی؟
ستا سو په نظر د «ن» توری په څو حرکتونو کې خطاطي شوی دی؟






**فعاليت**

د «ن» توري د ليکلو له حرکتونو او خطاطي د بنې په اړوند يو له بل سره مشوره وکړئ، وروسته بيا پورتنی مشق په نستعليق خط په خپلو کتابچو کې تمرين کړئ.



**کورنی دنده**

د «ن» توری په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.

## پنځلسم لوست

# د «و» توری

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم د «و» توري پر خطاطی او د قلم په حرکتونو وپوهیږي.



**پوښتنې**

کله مو د «و» توری د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط خطاطي کړی دی؟
څه فکر کوئ د «و» توری د کرسي خط په کومه برخه کې دی؟






**فعالیت**

په نستعلیق خط د «و» توري د لیکلو د حرکتونو او پر کړکي قلم د خطاطی په اړوند په خپل منځ کې بحث وکړي، وروسته یې څو واري په کتابچو کې ولیکئ.



**کورنی دنده**

په کړکي قلم د «و» توری په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## شپاړسم لوست

# د «هـ» توری

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نستعليق خط د «ه» توري له حرکتونو او خطاطۍ سره بلد شي.



**پوښتنې**

کله مو د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط د «ه» توری خطاطي کړی دی؟
ستاسو په نظر د «ه» توری پر څو طریقو او څه ډول خطاطي کیږي؟





**فعالیت**

د "هـ" توري د خطاطۍ او حرکتونو په اړوند بحث وکړئ، وروسته يې په کړکي قلم مشق او تمرين کړئ.



**کورنۍ دنده**

په کړکي قلم د «ه او هـ» توري په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.

# اوولسم لوست

## د «ی» توری

**موخه:** زده کوونکي به پر نستعلیق خط د کرسي خط له پاسه د «ی» توري له خطاطی او حرکتونو سره آشنا شي



**پوښتنې**

ستاسو په نظر د «ی» توری په څو ډوله خطاطي کیږي؟
څه فکر کوئ چې «ی» د الفبا تورو څووم توری دی؟






**فعالیت**

د «ی» توري د لیکلو حرکتونه په پام کې ونیسئ، وروسته یې پر نستعلیق خط په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.



**کورنۍ دنده**

د «ی» توری د کرسي خط له پاسه څو واري په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.



# دویم څپرکی

## د نستعلیق خط پر قاعده د څو توریزو کلمو د خطاطي بڼه

### اتلسم لوست

## آدم

**موخه:** د کرسي خط پر مخ په نستعلیق خط د «آدم» د کلمې له خطاطۍ او حرکتونو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

څه فکر کوئ چې مد د کومو تورو له پاسه لیکل کیږي او له څو حرکتونو څخه جوړ شوی دی؟



**فعالیت**

د کرسي خط له پاسه د پورتني سرخط له مخې د تورو د حرکتونو په پام کې نیولو سره د آدم کلمه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

د آدم کلمه په کړکي قلم سره په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## نو لسم لوست

# ادب

**موخه:** د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط او کړکي قلم د «ادب» کلمې د تورو له حرکتونو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

کله مو د «ادب» کلمه په کړکي قلم د حروفو له حرکتونو سره خطاطي کړې ده؟
څه فکر کوئ چې د «ادب» کلمه د کرسي خط په کومه برخه کې ده؟






**فعالیت**

د «ادب» کلمه له ټولو اساساتو سره څو وارې ولیکئ، بیا یې په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.



**کورنی دنده**

پورتنی مشق په کړکي قلم څو وارې په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ.

## شلم لوست

## بڼ

**موخه:** د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم د «بڼ» د کلمې له خطاطي او حرکتونو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

څه فکر کوئ چې د «بڼ» کلمه له څو تورو څخه ترکیب شوي ده؟

د بڼ کلمې کوم توري د کرسي خط له پاسه خطاطي شوي دي؟






**فعالیت**

پورتنۍ نمونه د هغه د حرکتونو په پام کې نیولو سره په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.



**کورنۍ دنده**

په کړکي قلم د بڼ کلمه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## يوويشتم لوست

# جاج

**موخه:** د کرسي خط پر مخ په نستعليق خط د «جاج» کلمې له خطاطي او حرکتونو سره به زده کوونکي بلدتيا پيدا کړي.



**پوښتنه**

ستاسو په نظر د جاج کلمه له څو تورو جوړه شوې ده؟

جاج جاج



**فعاليت**

په خپلو ډلو کې د «جاج» کلمې د حرکتونو په اړوند بحث وکړئ، وروسته يې پر کړکي قلم د کرسي خط له پاسه تمرين کړئ.



**کورنۍ دنده**

د کرسي خط پر مخ د جاج کلمه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.

## دوه ویشتم لوست

# درمل

**موخه:** زده کوونکي به دکرسي خط له پاسه په نستعليق خط او کړکي قلم د «درمل» کلمې د تورو له حرکتونو سره بلدتيا پيدا کړي.



**پوښتنه**

څه فکر کوئ چې د درمل کلمه د کرسي خط په کومه برخه کې ليکل کيږي؟





**فعاليت**

د ښوونکي په مرسته پورتنۍ مشق د هغه د تورو د ليکلو د حرکتونو په پام کې نيولو سره په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.



**کورنۍ دنده**

د درمل کلمه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.

## درویشتم لوست

# رښتیا

**موخه:** د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط د «رښتیا» کلمې له خطاطي او د لیکلو له حرکتونو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

ستاسو په نظر د «رښتیا» کلمه په څو طریقو خطاطي کیږي؟

آیا د رښتیا کلمې د لیکلو د حرکتونو په اړوند په څه پوهیږئ؟

رښتیا رښتیا



**فعالیت**

د رښتیا کلمې د حرکتونو په اړوند بحث وکړئ، وروسته یې په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه مشق کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.

## ثلر ویشتم لوست

# ستوری

**موخه:** د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط او کږکي قلم د ستوري کلمې د خطاطۍ له بنې سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنه**

کله مو د ستوري کلمه پر کږکي قلم او نستعلیق خط خطاطي کړې ده؟

ستوری ستوری



**فعالیت**

د ستوري کلمې د لیکلو د حرکتونو او خطاطي په اړه مشوره وکړئ، وروسته یې په کږکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ.



**کورنی دنده**

پورتنی نمونه په کږکي قلم د کرسي خط له پاسه مشق او تمرین کړئ.

## پنځه ویشتم لوست

# صلح

**موخه:** زده کوونکي به دکرسي خط له پاسه پر کړکي قلم د «صلح» د کلمې له خطاطي او حرکتونو سره بلد شي



**پوښتنې**

ستاسو په آند د صلح کلمه د کرسي خط په کومو بر خو کې موقعیت لري؟

کله مو د کرسي خط له پاسه پر کړکي قلم د صلح کلمه خطاطي کړې ده؟





**فعالیت**

په خپلو ډلو کې د هغو کلمو په اړوند چې لومړی توری یې «ها» او یا «ص» وي، فکر وکړئ، وروسته یې پر کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.



**کورنۍ دنده**

د کرسي خط له پاسه د «صلح» کلمه په کړکي قلم مشق او تمرین کړئ.

## شپږویشتم لوست

# طاووس

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط د «طاووس» کلمې پر خطاطي او حرکتونو وپوهیږي.



**پوښتنې**

ستاسو په آند د «طاووس» کلمه د کړکي قلم په څو حرکتو نو کې خطاطي کیږي؟
څه فکر کوئ د «طاووس» کلمې توري د کرسي خط په کومه برخه کې دي؟





**فعالیت**

په عملي توګه د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط او کړکي قلم د «طاووس» کلمې د تورو حرکتونه مشق کړئ.



**کورنی دنده**

پورتنی نمونه څو وارې په کړکي قلم مشق او تمرین کړئ.

## او ویشتم لوست

# عالم

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط پر مخ په نستعلیق خط د «عالم» کلمې له خطاطۍ سره بلد شي.



**پوښتنې**

ستاسو په نظر د «عالم» کلمه د کرسي خط پر مخ په څو حرکتونو کې خطاطي کیږي؟
کله مو د «عالم» کلمه د کرسي خط پر مخ پر نستعلیق خط او کړکي قلم خطاطي کړې ده؟





**فعالیت**

له پورتنۍ نمونې سره سم د «عالم» کلمه د کرسي خط پر مخ او نستعلیق خط پر کړکي قلم مشق او تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم څو وارې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## اته ویشتم لوست

# فصل

**موخه:** د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط د «فصل» کلمې له خطاطۍ او حرکتونو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

کله مو د کرسي خط له پاسه پر کړکي قلم د «فصل» کلمې حرکتونه تمرین کړي دي؟

د «فصل» کلمې په خطاطۍ کې د نستعلیق خط له قاعدې سره سم څو حرکتونه لیدل کیږي؟



**فعالیت**

د «فصل» د کلمې په اړه په خپل منځ کې بحث وکړئ، وروسته یې بیا د کرسي خط پر مخ په نستعلیق خط تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

د کرسي خط له پاسه د «فصل» کلمه په کړکي قلم څو واري د کرسي خط له پاسه تمرین کړئ.

## نهه ویشتم لوست

# قانون

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط د قانون کلمې له خطاطۍ او حرکتونو سره بلد شي.



**پوښتنه**

کله مو د قانون کلمه د کرسي خط له پاسه په حرکت لرونکې توګه خطاطي کړې ده؟



**فعالیت**

د قانون کلمې د خطاطۍ او د هغې د تورو د حرکتونو په اړوند بحث وکړئ، وروسته یې هر یو پر کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

د قانون کلمه د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم څو وارې مشق او تمرین کړئ.

## دیرشم لوست

# کتاب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط د «کتاب» د کلمې د خطاطۍ له بنې سره بلد شي.



**پوښتنه**

ستا سو په نظر د کتاب کلمې په خطاطي کې د کړکي قلم څو حرکتونه لیدل کیږي؟



**فعالیت**

د کتاب کلمې د حرکتونو په اړوند په خپل منځ کې بحث وکړئ، وروسته یې پر کړکي قلم د کرسي خط پر مخ تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

د کرسي خط له پاسه د کتاب کلمه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ.




## یو دیرشم لوست

# لمن

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه پر کړکي قلم د «لمن» کلمې په حرکتونو وپوهیږي.



**پوښتنې**

په لاندینۍ کلمه کې د «ل» او «ن» تورو تر منځ کوم توری دی؟

څه فکر کوئ د «لمن» کلمه د کړکي قلم په څو حرکتونو کې خطاطي شوې ده؟





**فعالیت**

پر کړکي قلم د «لمن» د کلمې د خطاطۍ او د تورو د حرکتونو په اړوند په خپل منځ کې خبرې وکړئ، وروسته یې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

# دوه دیرشم لوست

## مور

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه د نستعلیق خط له اصولو سره سم د «مور» کلمې له خطاطي سره بلد تیا پیدا کړي.



**پوښتنې**

کله مو په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط د «مور» کلمه خطاطي کړې ده؟

ستاسو په نظر د «مور» د کلمې په لیکلو کې د کړکي قلم څو حرکتونه شتون لري؟





**فعالیت**

په کړکي قلم د مور د کلمې د لیکلو د حرکتونو په اړوند په خپل منځ کې مشوره وکړئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

د مور کلمه په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## درېیم لوست

# نارنج

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه پر کړکي قلم د «نارنج» کلمې پر خطاطی او د حروفو د لیکلو په حرکتونو وپوهیږي.



**پوښتنې**

ستاسو په نظر د نارنج کلمې په خطاطۍ کې څو حرکتونه شتون لري؟

د نستعلیق خط د قاعدې په اړه څه ویلای شئ؟



**فعالیت**

د نارنج کلمې د تورو د حرکتونو او خطاطي د بنې په اړوند په خپل منځ کې بحث وکړئ، وروسته یې پر کړکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## څلور دیرشم لوست

# واده

**موخه:** د کرسي خط له پاسه په کږکي قلم د «واده» کلمې له حرکتونو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

څه فکر کوئ د «واده» په کلمې کې د کږکي قلم څو حرکتونه شتون لري؟

آیا کله مو د کرسي خط له پاسه د «واده» کلمه خطاطي کړې ده؟





**فعالیت**

د واده کلمې د خطاطۍ او تورو د لیکلو او حرکتونو په اړوند په خپل منځ کې بحث وکړئ، وروسته پورتنی نمونه په کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.



**کورنی دنده**

پورتنی نمونه په کږکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## پنځه دیرشم لوست

# هنر

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم د«هنر» د کلمې د حروفو په خطاطي او حرکتونو وپوهیږي.



**پوښتنه**

ستاسو په نظر په کړکي قلم د «هنر» کلمې د حروفو حرکتونه د کرسي خط پر کومه برخه خطاطي کیږي؟





**فعالیت**

په کړکي قلم د هنر کلمې د حروفو د لیکلو د حرکتونو په اړوند په خپل منځ کې بحث وکړئ، وروسته پورتنی نمونه په کړکي قلم مشق کړئ.



**کورنی دنده**

په کړکي قلم پورتنی نمونه په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.

## شپږدیرشم لوست

## یاسمن

**موخه:** زده کوونکي به د «یاسمن» کلمې له حرکتونو سره د کړکي قلم په واسطه د کرسي خط له پاسه آشنا شي.



**پوښتنه**

کله مو د یاسمن کلمه په کش دار ډول په کړکي قلم خطاطي کړې ده؟





**فعالیت**

د «یاسمن» کلمې د تورو د لیکلو د حرکتونو په پام کې نیولو سره په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه مشق او تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

# دريم څپرکی

## پر نستعليق خط د لنډو جملو خطاطي

**اوه ديرشم لوست**

### بني آدم

**موخه:** د کرسي خط له پاسه د «بني آدم» د ترکيبي کلمې له خطاطی سره د زده کوونکو بلدتيا.



**پوښتنې**

څه فکر کوئ چې مد د کومو تورو له پاسه ليکل کيږي؟

ووايئ چې په لاندې جمله کې کوم توري د کرسي خط له پاسه او کوم توري لاندې راغلي دي؟

بني آدم د لوی خدای اشرف مخلوق دی.



**فعاليت**

پورتنۍ جمله په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه د حرکتونو په پام کې نيولو سره په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په نستعليق خط په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.

## اته دیرشم لوست

# ادب

**موخه:** د کرسي خط پر مخ په کړکي قلم د «ادب» کلمې له حرکتونو او خطاطي سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

څه فکر کوئ لاندې جمله له څو تورو څخه جوړه شوې ده؟

ستا سو په نظر د «ادب» کلمه د کرسي خط په کومه برخه کې لیکل کیږي؟

له لقمان حکیم نه چا پوښتنه وکړه: ادب دې له چا زده کړ؟

ځواب یې ورکړ: له بې ادبانو.



**فعالیت**

د ادب کلمه د خطاطي د قواعدو مطابق څو وارې تمرین کړئ، وروسته پورتنۍ جمله په کړکي قلم او نستعلیق خط په خپلو کتابچو کې ولیکئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## نهه دیرشم لوست

## بڼ

**موخه:** د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط د «بڼ» کلمې د لیکلو له حرکتونو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنې**

څوک ویلای شي چې لاندې جمله د کړکي قلم په څو حرکتونو کې خطاطي شوېده؟ ستاسو په نظر د «بڼ» کلمه له څو تورو جوړه شوې ده او توري یې د کرسي خط په کومه برخه کې دي؟

بڼ ډیر ښکلی دی



**فعالیت**

پورتنۍ جمله د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط په خپلو کتابچو کې پر کړکي قلم مشق او تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## څلويښتم لوست

## جاج

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط پر مخ پر نستعليق خط د «جاج» د کلمې له اساساتو او خطاطي له بنې سره بلدتيا پيدا کړي.



**پوښتنې**

کله مو د جاج کلمه خطاطي کړې ده؟

ستاسو په نظر د «جاج» کلمې توري څه ډول خطاطي شويدي؟

موږ به د پورتنۍ جملې جاج واخلو



**فعاليت**

په خپلو ډلو کې د جاج کلمې په اړوند خبرې وکړئ، وروسته پورتنۍ جمله د کرسي خط له پاسه په نستعليق خط مشق او تمرين کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په نستعليق خط په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.

## يو څلويښتم لوست

# درمل

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط پر مخ د « درمل » کلمې له خطاطی سره آشنا شي.



**پوښتنې**

کله مو د کرسي خط په مخ پر نستعليق خط د «درمل» کلمه خطاطي کړې ده؟
د څو کلمو نو مونه واخلئ چې په سر کې يې د دال توری راغلی وي؟

د ناپوهې د رنځ درمل پوهه ده



**فعاليت**

پورتنۍ جمله د ښوونکي په مرسته په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق کړئ، د درمل کلمه څو وارې مشق او تمرين کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په نستعليق خط څو وارې په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.

## دوه څلويښتم لوست

# رښتيا

**موخه:** زده کوونکي به د رښتيا کلمې اړوند جملې په کړکي قلم له خطاطۍ او حرکتونو سره بلد شي.



**پوښتنې**

کله مو د رښتيا کلمه په نستعليق خط د کرسي خط له پاسه خطاطي کړې ده؟

ستاسو په نظر د رښتيا کلمې د ليکلو په مهال د کړکي قلم له څو حرکتونو څخه ګټه اخيستل شوې ده؟

رښتیا وېل د خدای د رضا سبب ګرځي



**فعاليت**

په نستعليق خط د ليکلي جملې په اړوند بحث وکړئ، وروسته پورتنۍ جمله په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ جمله په کړکي قلم سره څو وارې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

## درې څلویښتم لوست

# ستوری

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط پر مخ په نستلعیق خط د «ستوري» له خطاطي او د تورو له حرکتونو سره بلد شي.



**پوښتنې**

کله مو د «س» توری له دندانو پرته پر کش دار ډول پر کړکي قلم خطاطي کړی دی؟

ستا سو په آند د «س» توري د لیکلو په کش داره بڼه کې څو حرکتونه لیدل کیږي؟

د قطب ستوری تر ټولو روښانه وی



**فعالیت**

د ستوري په کلمه کې د دندانو لرونکي او کش دار «س» په اړوند فکر وکړئ، وروسته يې د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې ولیکئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ.

## څلور څلویښتم لوست

## صلح

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط پر مخ د «صلح» کلمې د خطاطۍ له بنې سره بلدتیا پیدا کړي.



**پوښتنه**

کله مو د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط په کړکي قلم د «صلح» کلمه خطاطي کړې ده؟

په صلح کې خیر دی



**فعالیت**

په خپلو ډلوکې د «صلح» د کلمې په اړوند بحث وکړئ، وروسته یوه بله کلمه چې لومړی توری یې «ص» وي په کړکي قلم مشق کړئ، هره ډله دې خپل کار خپلو ټولګیوالو ته وربښکاره کړي.



**کورنۍ دنده**

د «صلح» کلمې د اهمیت په اړوند څه پوهیږئ، پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې ولیکئ

## پنځه څلویښتم لوست

# طاووس

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه د «طاووس» کلمې له خطاطۍ سره آشنا شي.



**پوښتنې**

څه فکر کوئ د «ط» توری له کوم توري وروسته راځي او څنګه خطاطي کيږي؟
څه فکر کوئ چې د طاووس کلمې توري د کرسي خط په کومه برخه کې دي؟

طاووس ښکلی الوتونکی دی



**فعالیت**

په عملي ډول د «طاووس» کلمه د نستعلیق خط د قواعدو له مخې پر کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**شپږم څلویښتم لوست**

## عالم

**موخه:** د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط د «عالم» کلمې له خطاطي سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنه**

کله مو د عالم کلمه د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط په کړکي قلم سره خطاطي کړې ده؟

عالم تل له بدو ځان ساتي



**فعالیت**

پورتنۍ جمله په کړکي قلم په نستعلیق خط د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.

## اوه څلويښتم لوست

# فصل

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نستعليق خط د «فصل» کلمې له خطاطي سره بلد شي.



**پوښتنې**

ستاسو په نظر د فصل کلمه د کرسي خط په کومه برخه کې ده؟
آيا کولای شئ د فصل د کلمې توري د کرسي خط له پاسه پر نستعليق خط خطاطي کړئ؟

د کال لومړی فصل د بارانونو موسم دئ.



**فعاليت**

د فصل کلمې اړوند جملې په هکله فکر وکړئ، وروسته يې څو وارې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ جمله پر کړکي قلم، کړکي په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.

## اته څلویښتم لوست

# قانون

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط پر مخ د قانون کلمې له خطاطۍ سره آشنا شي.



**پوښتنې**

کله مو د قانون کلمه د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم او نستعلیق خط خطاطي کړېده؟

د ټولنیز روند په هر ګام کې باید قانون په پام کې ونیول شي



**فعالیت**

د قانون کلمې او د هغه د خطاطي په اړوند په خپل منځ کې بحث وکړئ، وروسته یې په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.

## نه څلویښتم لوست

## کتاب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه د کتاب د کلمې پر خطاطۍ وپوهیږي.

**پوښتنه**



ستاسو په آند پورتنۍ جمله څنګه خطاطي شوې ده او په کلمو کې یې څو حرکتونه تر سترګو کیږي؟

قرآن کریم د خدای کتاب دی

**فعالیت**



په کړکي قلم د پورتنۍ جملې د خطاطي په اړوند یو له بل سره مشوره وکړئ وروسته یې په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## پنځوسم لوست

# لمن

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه پر نستعليق خط د لمن د کلمې له حرکتونو او خطاطي سره بلد شي.



**پوښتنې**

کله مو د کرسي خط له پاسه پر نستعليق خط او کړکي قلم د لمن کلمه خطاطي کړې ده؟

څه فکر کوئ په نستعليق خط د لمن په کلمه کې د «ل» توري څو حرکتونه په پام کې نيول شوی دي؟

تول افغانان د وطن د مور په لمن کې رالوی شوي دي



**فعاليت**

د لمن کلمې اړوند جمله د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم او نستعليق خط په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.

## یو پنځوسم لوست

### مور

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط د «مور» د کلمې اړوند جملې د خطاطۍ پر لارو چارو وپوهیږي.



**پوښتنې**

کله مو د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط او کړکي قلم د «مور» کلمه خطاطي کړې ده؟

څه فکر کوئ په نستعلیق خط د«مور» کلمې په خطاطۍ کې څو حرکتونه په پام کې نیول شوي دي؟

جنت د مور تر پښو لاندې دی.



**فعالیت**

د پورتنۍ جملې او د مور کلمې د خطاطۍ په اړوند په خپلو منځو کې بحث وکړئ، وروسته یې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## دوه پنځوسم لوست

# نارنج

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه پر کړکي قلم د نارنج د کلمې له خطاطۍ او د تورو د ليکلو له حرکتونو سره بلد شي.



**پوښتنې**

ستاسو په نظر پر کړکي قلم د نارنج کلمې په ليکلو کې څو حرکتونه ليدل کيږي؟

په لاندې جمله کې کوم توري د کرسي خط له پاسه او کوم توري لاندې راغلي دي؟

د نارنج گل میله د جلال آباد په ښکلي ښار کي کیږي.



**فعاليت**

د نارنج کلمې د تورو د ليکلو، حرکتونو او خطاطۍ د بنې په اړوند په خپل منځ کې مشوره وکړئ، وروسته يې په کړکي قلم او نستعليق خط د کرسي خط له پاسه مشق کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې وليکئ.

## درې پنځوسم لوست

# واده

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه د واده کلمې د خطاطۍ له بڼې سره آشنا شي.



**پوښتنې**

څوک ویلای شي چې د الفبا په ترتیب کې د «و» له توري مخکې او وروسته کوم توري دي؟

کله مو د واده کلمه د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط خطاطي کړې ده؟

د هرې نیمې واده ځانګړې مراسم لري



**فعالیت**

دپورتنۍ جملې د خطاطۍ د بڼې په اړوند یو له بل سره بحث وکړئ، وروسته یې د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط مشق کړئ.



**کورنۍ دنده**

په کړکي قلم پورتنۍ نمونه په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ.

## څلور پنځوسم لوست

## هنر

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه د هنر د کلمې توري په نستعليق خط خطاطي کړي.



**پوښتنې**

څه فکر کوئ د هنر کلمه له څو تورو څخه جوړه شوې ده؟

ستاسو په نظر د «ه» توری له نورو تورو سره څنګه خطاطي کيږي؟

هر هنر ځانګړې ښکلا او ځانګړتیاوې لري



**فعاليت**

د هنر د کلمې د اړوندې جملې د خطاطی او تورو حرکتونو په هکله بحث وکړئ، وروسته يې په کتابچو کې تمرين کړئ.



**کورنۍ دنده**

په کړکي قلم پورتنۍ نمونه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.

## پنځه پنځوسم لوست

# یاسمن

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه د یاسمن کلمې د خطاطۍ په بڼه وپوهیږي.



**پوښتنې**

کله مو د کرسي خط له پاسه په یوه جمله کې د یاسمن کلمه خطاطي کړې ده؟
څه فکر کوئ د «ی» توری څو ډوله دی او څنګه خطاطي کیږي؟

یاسمن ډېر ښکلی ګل دی



**فعالیت**

په نستعلیق خط هغه جمله چې یاسمن کلمه پکې ذکر شوې ده په کړکي قلم خطاطي کړئ، هڅه وکړئ چې د کتاب د نمونې په څېرې ښکلې خطاطي کړئ.



**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې څو وارې تمرین کړئ.

## دویمه برخه
## د حسن خط د تدریس لارښود

### لومړی لوست

### ۱ مخ

د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه) لومړی ساعت

| | | |
|---|---|---|
| د لوست سر لیک | آ | |
| عمومي موخې | د «آ» توري د خطاطي له بنې سره د زده کوونکو بلدتیا | |
| د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | هیله کیږي چې د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- په نستعلیق خط د «آ» توري د لیکلو پر اصولو وپوهیږي.<br>- د «آ» توری د کرسي خط پر مخ پر نستعلیق خط خطاطي کړای شي.<br>- پر نستعلیق خط او د کړکي قلم «آ» توري له خطاطی سره علاقمند شي. | |
| د تدریس لارښود | ځانګړې او ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه او عملي کارونه | |
| دتدریس وسایل | کتاب، کتابچه، کړکي قلم، پنسل، پنسل پاک، تباشیر، مشوانۍ او خط کش، د کړکي قلم د تراش کولو ابزار | |
| د ارزونې لاره | د لوست د پیاوړتیا په موخه له زده کوونکو څخه څو پوښتنې وکړئ. | |
| لومړني فعالیتونه | سلام ورکول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د نوي کال مبارکي او د دریم ټولګي د حسن خط لوست یادونه. | ۵ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنې<br>کله مو د کرسي خط پر مخ پر نستعلیق خط او کړکي قلم خطاطي کړې ده؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
| --- | --- |
| د لوست په اړوند له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ.<br>• دکرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط د«آ» توري د خطاطي په اړوند زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ.<br>• پر نستعلیق خط د «آ» توري د ښکلو لیکلو طریقه پر کړکي قلم زده کوونکو ته ور وښیئ.<br>• د ډله ییز کار څارنه وکړئ او د هغوی مشقونه اصلاح کړئ.<br>دزیاتې هڅونې په موخه د هغوی ډله ییز کارونه نندارې ته وړاندې کړئ. | ۳۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده**

د اوبو کلمه پر نستعلیق خط او کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق اوتمرین کړئ.

**اضافي معلومات**

ښاغلی ښوونکی: مشق او تمرین درې پړاوونه لري: قلمي، نظري او ذهني

۱:- قلمي: د نمونې له مخې د کړکي قلم او نورو قلمونو په واسطه د بیلا بیلو کلمو او تورو نقل کول.

۲:- نظري: د لیکلو پر وخت د ښوونکي خطونو، تورو، کلماتو او حرکاتو ته په پاملرنه چې په کتلو سره تر سره کیږي او د زده کوونکو پر ذهن اغیزه کوي.

۳:- ذهني: هغه دی چې زده کوونکي د اصولو او قواعدو په پوهېدو او په ډېر تمرین سره له ښوونکي پرته له خپل ذهن څخه مشق وکړي.

زده کوونکو ته لازمه ده چې ډېر تمرین وکړي، د ښوونکي تورو او کلماتو ته په پاملرنې سره باید خپل مشق تمرین کړي. زده کوونکي دې حرکتونه په پام کې ونیسي، په صبر او حوصلې سره دې په خپلو کتابچو کې تمرین وکړي، یوه موده دې له نمونې پرته له ځانه لیکل نه کوي، ترڅو ښه ورباندې بلد شي. د مشق لپاره دې ښه قلم غوره کړي، له نیمګړو او بې کیفیته سرمشقونو څخه دې پیروي نه کوي او څومره چې امکان لري، باید ناقصو خطونو ته پاملرنه ونه کړي. کله چې زده کوونکو یوه اندازه بلدتیا پیدا کړه، بیا دې له خپل ذهن څخه توري او کلمات ولیکي، له نمونې سره دې، پرتله کړي او د ښوونکي نظر دې هم پرې واخلي.

ښه خبره ده چې زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونو څخه سر غړونه ونه کړي او لارښوونو ته یې پاملرنه وکړي، هر وخت پاکي او نظافت په پام کې ونیسي. د خطاطۍ وسایل منظم اوپاک وساتي، په لیکلو کې مبالغه او په خطاطۍ کې بیړه ونه کړي.

## پنځه ویشتم لوست

## ۲۲ مخ

**د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه)** **لومړی ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| د لوست سر لیک | درمل | |
| عمومي موخې | زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه د کړکي په قلم د درمل کلمې له لیکلو سره بلد شي. | |
| د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | له زده کوونکو هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>- زده کوونکي د درمل کلمې په خطاطي کولو د هغې په حرکتونو وپوهیږي.<br>- زده کوونکي به په کړکي قلم د درمل کلمه په نستعلیق خط ولیکلای شي.<br>- په نستعلیق خط به په کړکي قلم د درمل کلمې له خطاطۍ سره مینه پیدا کړي. | |
| د تدریس لاربنود | ډله ییز او ځانګړې فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه او عملي کارونه | |
| د تدریس وسایل | کتاب، کتابچه، کړکي قلم، پنسل، پنسل پاک، تباشیر، مشوانۍ، خط کش، د کړکي قلم د تراش کولو ابزار | |
| د ارزونې لاره | د لوست د تحکیم په موخه له زده کوونکو څخه د لوست په اړوند څو پوښتنې | |
| لومړني فعالیتونه | سلام ورکول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د تېر لوست یادونه او له نوي لوست سره ارتباط ورکول. | ۵ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنې: کله مو د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم د درمل کلمه خطاطي کړیده؟ | ۵ دقیقې |

<table>
<tr><th>د ښوونکي فعالیتونه</th><th>وخت</th></tr>
<tr><td>• د درمل کلمه د کرسي خط له پاسه د کتاب له مخې پر تخته ولیکئ زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ.<br>• پورتنۍ کلمه د کرکي په قلم په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ.<br>• د دوی د کار څارنه وکړئ او مشق یې ورته اصلاح کړئ.<br>• په کرسي خط د درمل کلمې د خطاطۍ طریقه ورته توضیح کړئ.</td><td>۳۵ دقیقې</td></tr>
<tr><td colspan="2">کورنۍ دنده<br>کرسي خط ته په پاملرنې د درمل کلمه په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ</td></tr>
</table>

**محترم ښوونکی:** د هر لوست لپاره د دې پلان له لیکلو څخه ډډه شوې ده، تاسې کولای شئ د ښوونکي لارښود له دې پلان څخه د دې کتاب په ټولو درسونو کې ګټه واخلئ.

**یادونه**: د دې کتاب هغه درسونه چې ډېر وخت نیسي، کولای شئ په دریو ساعتونو کې تدریس کړئ.